






نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمايلي دي:

ژباړه: هغو کسانو ته د قيامت په ورځ د بشپړي رڼا زېری ورکړئ، چي په تیاروکي د جومات پر لور د لمانځه له پاره روان وي.

«سنن ابن ماجه»

غوره ویناوي

حضرت ابوبکر صديق (رض):

کوم خلک چي خود غرضه وي، هيڅکله هم ښه ملګرى نه سي کېدلای.

د امتياز څښتن:

د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کي دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰لمريز، چهارشنبه ۱/رجب المرجب/۱۴۴۶ هـ ق، ۱۲/مرغومی/ ۱۴۰۳ل کال – ګڼه (۵۹)

Wednesday-1-January-2025 Issue: 59


# اقتصادي مرستيال: د شاه او عروس بند پروژې تطبيق؛ د اوبو مديريت په برخه کي يو ستر ګام دی!



د اوبو او انرژۍ وزارت له لوري د څه باندي ۵۲ ميليونو ډالرو په لګښت، د شاه او عروس بند پروژې چاري بشپړي او د ۱۴۰۳ل کال د مرغومي مياشتي پر يوولسمه نېټه، د سه شنبې په ورځ د افغانستان اسلامي امارت د جګپوړو چارواکو په شتون کي ګټي اخيستني ته وسپارل سو.

د باختر آژانس د خبر له مخي، په کابل کي په همدې مناسبت جوړ سوو مراسمو کي د افغانستان اسلامي امارت د رياست الوزرا اقتصادي مرستيال ملاعبدالغني برادر اخند ويلي، د شاه او عروس بند پروژې تطبيق، د هيواد د اوبو مديريت په برخه کي يو ستر ګام دی چي د کرهڼي او انرژۍ اړتياوو پوره کولو او د افغانستان اقتصادي ودي په برخه کي مهم او ارزښتناک رول لوبوي.

هغه د اوبو ارزښت ته په اشارې سره زياته کړه: "نن په نړۍ‌وال سياست او اړيکو کي پر اوبو د يو مهم اقتصادي عنصر په توګه بحث کېږي او ۴مخ

## د ښار په بېلابېلو ناحيو کي کوڅې او سړک قيرېږي کېږي



په کندهار ښار کي د ۶۹۰ متره په اوږدوالي دوې کوڅې کانکرېټ او د يو کېلو متر په اوږدوالي سره سړک قيرېږي کېږي.

د ښاروالۍ وياند سيف الله عاصم ويلي، دغه کوڅې د کندهار ښار د اوومي ناحيې اړوند، په مير بازار سيمه کي رغول کېږي.

د عاصم په قول، يادي دوې کوڅې شاوخوا ۶۹۰متره اوږدوالی او ۵ متره بروالی لري، چي د چارو په پای ته رسېدو سره به يې د سيمي اوسېدونکو ته په تګ – راتګ کي ډېري اسانتياوي رامنځته سي. ۴مخ

## په خاکرېز ولسوالۍ کي د يو چيک ډيم جوړېدو چاري پيل سوې



د کندهار ولايت په خاکرېز ولسوالۍ کي د څه کم ۱۶ ميليونو افغانيو په لګښت، د يو چيک ډيم جوړېدو چاري پيل سوي دي.

د کرهڼي رياست د وياند محمد حنيف حقمل ويلي، د کرهڼي، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست په هڅو، له اقتصاد رياست سره ۴مخ

## په کندهار کي له سوو تنو بزګرانو سره مرسته وسوه



د کندهار ولايت په ښوراوک ولسوالۍ کي، له ۳۰۰ تنو بزګرانو سره، د غنمو اصلاح سوي تخم او کېمياوي سري مرسته وسوه.

د کرهڼي رياست مطبوعاتي مسئول محمد حنيف حقمل ويلي، د کرهڼي اوبو لګولو او مالدارۍ رياست په هڅو، د خوراک او کرهڼي نړۍ‌وال سازمان (ايف. اې. او) په مالي ملاتړ، د ښوراوک ولسوالۍ له ۳۰۰ اړمنو بزګرانو سره د غنمو اصلاح سوي تخم او کېمياوي سري مرسته وسوه.

د حقمل په قول، هر بزګر ته ۵۰ کېلو د غنمو ۴مخ

## دوياندويانو د ظرفيت لوړوني له پاره سېمينار جوړ سو




د کندهار په اطلاعات او کلتور رياست کي د امارتي ادارو د وياندويانو د ظرفيت لوړوني سېمينار جوړ سو.

د دې رياست د اطلاعاتو آمريت له لوري په دې سېمينار کي د امارتي ادارو وياندويانو ته د مطبوعاتي اعلاميې ليکني اړوند نظري او عملي زده کړي ورکړل سوې، پر همدې مهال د دې رياست د اطلاعاتو آمر سيد حمدالله آغا هاشمي ويلي، د دې سېمينار څخه موخه داده، چي د وياندويۍ په برخه کي د امارتي ۴مخ

## د اوبو رسوني لويي پروژې د درېيم فاز کارونه پيل سوي



د کندهار ولايت د سپين بولدک ولسوالۍ، د کور په کور اوبو رسوني لويي پروژې د درېيم فاز کارونه پيل سوي دي.

د سپين بولدک ولسوالۍ ښاروالۍ له لوري، د څښاک پاکو اوبو رسوني پر يوې لويي شبکې په درې فازونو کي کار پيل سوی و، چي د دې ستري شبکې د دوو فازونو کار رسماً بشپړ سوی او د وروستي فاز کارونه يې هم پيل سوي دي.

د يادي ولسوالۍ ۴مخ

## له بېلابېلو لنډمهاله زده کړو ۳۸۴ تنه ځوانان فارغ سول




د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست او YHDO مؤسسې له ګډ ښوونيز مرکزه ۳۸۴ تنه ځوانان د بېلابېلو لنډ مهاله زده کړو فارغ سول.

د اطلاعات او فرهنګ رياست اړوند، د ځوانانو چارو آمر مولوي حزب الله محمود ويلي، د يادو ۳۸۴ تنو ځوانانو څخه ۵۶ تنه له سواد زده کړي، ۱۱۱ تنه له انګليسي، ۱۵۰ تنه له کمپيوټر او ۶۷ تنه يې له فريلانسينګ زده کړو څخه فارغ سوي دي.

د محمود په قول، دغو ځوانانو ته د مسلکي او باتجربه استادانو له لوري زده کړي ورکول سوي دي.

د يادوني وړ ده، چي اوس مهال لسونه ځوانان د اطلاعات او فرهنګ رياست اړوند په ښوونيز مرکز کي د عربي، ترکي، انګليسي او کمپيوټر زده کړه څخه په وړيا ډول تر سره کوي.



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

## درانه انتقامي بريدونه؛ ترهګرو پسي تر فرضي کرښي د افغان ځواکونو اوښتل!

د اسلامي امارت مجاهد ځواکونه په لومړي وار تر ډيورنډ فرضي کرښي پوري غاړي د شريرو کړيو پر پټنځايونو او د هغوی پر ملاتړو درانه بريدونه وکړل.

دغه ځانګړي عمليات چي د افغانستان دفاع وزارت له خوا پلان سوي وو، تر فرضي کرښي پوري غاړي په کښې د ترهګرو مهم مرکزونه په نښه او له منځه يووړل سول.

د اسلامي امارت ځانګړي ځواکونه د دغو شريرو کړيو په له منځه وړلو پسي وروسته له هغي پوري غاړي ته واوښتل، چي څو ورځي وړاندي پاکستاني جنګي الوتکو د پکتيکا ولايت په برمل ولسوالۍ کي بې ګناه ملکي کسان (تورسري او ماشومان)، د خپلو مخالفينو په نامه بمبار او شهيدان کړل.

له ډيورنډ فرضي کرښي څخه د شريرو کړيو پسې د افغان ځواکونو اوښتل، د دې تېري انتقامي جواب و. په دې جواب کي د درنو وسلو په ذريعه هغه پټنځايونه په نښه سول، چي پر افغانستان باندي د بريدونو له پاره کار ځني اخيستل کېدی.

د افغانستان دفاع وزارت وياند عنايت الله خوارزمي هم د دې عملياتو په اړه ويلي، موخه يې د شريرو کړيو هغه مرکزونه ختمول ول، چي هلته يې پر افغانستان باندي بريدونه تنظيمول.

که څه هم اسلامي امارت د دغو کړيو نوم مستقيم نه دی ياد کړی، خو دا اصطلاح د داعشي خوارجو له پاره کارول کېږي.

دا خبره اوس ډېره ښکاره سوې، چي پاکستاني حکومت په خپله خاوره کي د داعش په څېر، ترهګرو ګروپونو ته پټنځايونه برابر کړي او د خپلو موخو تر لاسه کولو له پاره يې ملاتړ کوي.

تازه د بلوڅ بېلتون پالو ډلي يووار بيا پر پاکستاني رژيم نيوکه کړې، چي د بلوچستان مستونګ سيمه يې د داعشي خوارجو روزني له پاره ځانګړې کړې ده.

د بلوڅو مشري ډاکټر صبيحه بلوچ ويلي، پاکستان دا سيمه د يو منظم پلان له مخي، د داعشي خوارجو په مرکز بدله کړې ده.

تر دې وړاندي اسلامي امارت هم بار – بار نيوکي کړي، چي پاکستاني حکومت د داعشي خوارجو د روزني او ملاتړ له کړنو لاس نه دی اخيستی. دا چي پاکستاني حکومت د افغانستان نيوکي تورونه بلل، اوس د بلوڅو مشري دې څرګندونو ته څه جواب لري؟

د هغې دغه وينا ښکاره ثبوت دی، چي پاکستان اوس هم علني د داعش په څېر، ترهګريزي ډلي روزي او ملاتړ يې کوي، خو دا بايد هېر نه سي چي د پاکستاني حکومت له لوري، د دې شريرو کړيو دا ملاتړ د ټولي سيمي امنيت ته ستر تهديد دی.

که څه هم افغانستان څو واره پاکستان ته خبرداری ورکړی، چي له دې کړنو لاس واخلي، خو پاکستان سربېره پر دې چي هيڅ توجه يې و نه کړه، بيرته يې پر افغانستان تورونه لګول پيل کړل. د دې تورونو لمن بيا دومره اوږده سوه، چي په افغان خاوره کي بې ګناه تورسري او ماشومان د خپلو مخالفو وسله والو په نامه بمبار کړي.

په جواب کي د اسلامي امارت ځواکونو ډيورنډ فرضي کرښي ته څېرمه، د ربښتينو ترهګرو پټنځايونه په نښه او پاکستاني لوري ته يې وښوول، چي ترهګر داسي په نښه او له منځه وړل کېږي.

څلورم مخ

## بیلابیل موضوعات

### د افغانستان اقتصادي فرصتونه او ننګوني؛ د پاکي انرژۍ او کانونو په سکټور کي پانګونه او د پالیسیو اړتیا!

د مجید زابلي د اقتصادي څېړنو او پالیسۍ تحلیل مرکز څخه په مننه

افغانستان د انرژۍ او کانونو د بډایه سرچینو درلودونکی هیواد په توګه، د سیمه‌ییزو او نړۍوالو پانګه والو پام ځان ته اړولی دی. د دې هیواد طبیعي سرچینې چې په لمریزي، بادي او اوبیزي انرژۍ کې د پام وړ ظرفیتونه لري، د سیمي له پاره ستر اقتصادي امکانات وړاندي کوي. له بلي خوا د افغانستان د کانونو سکټور چې د مسو، لیتیم، انتي موني او سرو زرو په شمول، د قیمتي زېرمو ډک دی، د اقتصادي ودي له پاره ستر امکانات برابروي. دا ټول په داسي حال کي دي چي هیواد لا هم د انرژۍ او اقتصادي ځان بسیاینې له پاره له ننګونو سره مخ دي.

د انرژۍ په تولید کي فرصتونه او ننګوني:

افغانستان اوس مهال یوازي ۲۰ سلنه برېښنا له کورنیو سرچینو تولیدوي، په داسي حال کي چي ۸۰ سلنه برېښنا له ګاونډیو هیوادونو لکه: ازبکستان، تاجکستان، ترکمنستان او ایران څخه واردوي. دا واردات سره له دې چي د لنډمهاله اړتیاوو له پاره مهم دي، بلکي په اوږدمهال کي د کورنیو تولیداتو د ودي مخه نیسي او د اقتصادي خپلواکۍ له پاره ستونزي جوړوي.

د لمریزي، بادي، او اوبیزي انرژۍ له پاره د موجودو سرچینو مدیریت کولای سي، د کورني تولید اړتیاوي پوره کړي او اضافي انرژي د صادراتو له پاره چمتو کړي. د ملي کچي پانګوني پلانونه، په ځانګړې توګه؛ د پنځه کلني طرحي له لاري د دې سکټور پرمختګ ته وده ورکولای سي. د دې تر څنګ، د انرژۍ تولید په سکټور کي د شفافو قراردادونو، نوو ټکنالوژیو معرفي او د سیمه‌ییزو پانګه والو هڅوني ته اړتیا ده.

د کانونو په سکټور کي د پانګوني فرصتونه:

افغانستان د کانونو په برخه کي د نړۍوالو پانګه والو د پام وړ ګرځېدلی دی. په دې سکټور کي په ځانګړې توګه؛ د سرو زرو، لیتیم او انتي موني په برخه کي پانګوني د پام وړ امکانات وړاندي کوي. د تخار ولایت د چاه آب ولسوالۍ د سرو زرو کان چي د یو چینایي شرکت سره په قرارداد ورکړل سوی، په دې برخه کي د خصوصي او بهرنۍ پانګوني د بریالۍ بېلګي په توګه یادېږي. په دې کان کي شاوخوا ۳۵۰ میلیونه ډالره پانګونه سوې او د برمه‌کارۍ چاري په چټکۍ سره رواني دي.

د کانونو پراختیا له پاره د نړۍوالو لابراتوارونو جوړولو طرحي، لکه د عمان د سوداګریز پلاوي دلچسپي، په افغانستان کي د سیمه‌ییزي اقتصادي همکارۍ د ودي له پاره مثبتي پایلي لرلای سي. د دې تر څنګ د سرو زرو د پروسس له پاره د داخلي تولیداتو ملاتړ او د نوو کارخونو جوړول کولای سي، د هیواد عواید زیات کړي او د کاري فرصتونو په رامنځته کولو کي مرسته وکړي.

د خصوصي پانګوني اهمیت او ننګوني:

خصوصي پانګونه د افغانستان د اقتصادي پرمختګ له پاره بنسټیز اهمیت لري، که څه هم د ۲۰۲۰م کال پوري په دې برخه کي د نړۍوال بانک په مرسته، د پانګوني چاپېریال د ښه والي له پاره هڅې سوې وې، خو د وروستیو کلونو سیاسي او اقتصادي بدلونونو د خصوصي او بهرنۍ پانګوني په وړاندي خنډونه رامنځته کړي دي. د بانکي سیستم ستونزي او نړۍوال بندیزونه د دې لامل سوي چي بهرني شرکتونه د افغانستان په بازار کي پانګونه و نه کړي. په داسي حال کي چي د خصوصي سکټور د پیاوړتیا له پاره د سوداګرو هڅول او د داخلي پانګوني چاپېریال ښه کول ډېر اړین دي.

د پالیسیو اړتیا او وړاندیزونه:

۱- د انرژۍ سکټور پراختیا: د لمریزي، بادي او اوبیزي انرژۍ په برخو کي د پانګوني له پاره د شفافو او اسانه قوانینو ترتیب.

۲- د کانونو مدیریت: د کانونو د عوایدو اغېزناک مدیریت او د شفافو قراردادونو ډاډ ترلاسه کول.

۳- د سیمه ییزي همکارۍ پراختیا: د قزاقستان او عمان په څېر هیوادونو سره، د اقتصادي اړیکو پراختیا او ګډي پانګوني.

۴- د خصوصي سکټور ملاتړ: د خصوصي پانګه والو هڅونه او د کورني تولید له پاره د اسانتیاوو برابرول.

۵- د اقتصادي ځان بسیاینې پلان: د انرژۍ او کانونو سکټور له پاره د اوږدمهاله ستراتیژۍ جوړول.

پایله: افغانستان د انرژۍ او کانونو په سکټور کي د ستر اقتصادي امکاناتو درلودونکی هیواد دی. که په دې برخو کي د پانګوني له پاره مناسب سیاستونه ترتیب سي او د سرچینو مدیریت په اغېزناک ډول تر سره شي، هیواد کولای سي، د اقتصادي ځان بسیاینې او سیمه ییزي همکارۍ هدفونه ترلاسه کړي. د انرژۍ تولید او کانونو پراختیا یوازي د ملي اړتیاوو د پوره کولو له پاره نه، بلکي له نړۍوالو بازارونو سره د اړیکو له پاره هم مهم ګام دی.

## پر افغان خاوره د پاکستاني ځواکونو د برید غندنه؛ د حقایقو او تاریخي واقعیتونو په رڼا کي!

صابر جان "محصل"

په وروستیو کلونو کي پر افغان خاوره د پاکستاني ځواکونو بریدونه، هوایي بمبارۍ او د توغندیو حملې د افغانستان د مځکنۍ بشپړتیا او ملي حاکمیت ښکاره نقض ګڼل کېږي. دا ډول بریدونه نه یوازي د نړۍوالو اصولو او د ملګرو ملتونو د منشور خلاف دي، بلکي د ګاونډیتوب او د اسلامي ورورولۍ ارزښتونه هم تر پښو لاندي کوي.

پر افغان خاوره د پاکستاني ځواکونو بریدونه، په ځانګړي ډول؛ د توغندیو دوامداره حملې په ختیځو او سهېل ختیځو ولایتونو کي، د سوونو ملکي خلکو د ژوند اخیستني او د ګڼو نورو ټپي کېدو سبب سوي دي. دغه بریدونه د خلکو د کورونو، ښوونځیو او کلینیکونو د ویجاړېدو سبب سوي او ګڼي کورنۍ یې د خپلو سیمو پرېښوولو ته اړي کړي دي.

دا یرغلانه تجاوز په داسي حال کي تر سره کېږي چي افغانستان د اوږدې جګړې او کړاوونو څخه راوتلی او په خپلو ټولنیزو او سیاسي زخمونو د مرهم ایښوولو په هڅه کي دي. پاکستان، د سولي او ثبات پر ځای، پر افغانانو د جګړې د تحمیلولو نوي لاري لټوي.

د ملګرو ملتونو منشور، په ځانګړي ډول؛ د هغې د څلورمي مادې بندونه، د هر هیواد مځکنۍ بشپړتیا ته درناوی اړین ګڼي. د پاکستان له خوا د افغانستان د حریم نقض، د دې نړۍوال اصول ښکاره سرغړونه ده. سربېره پر دې، د دواړو هیوادونو تر منځ؛ د ۱۹۶۵ او ۱۹۸۸ کلونو په تړونونو کي هوکړه سوې چي هیڅ یو هیواد به د بل هیواد حریم نه نقض کوي، خو پاکستان دا هوکړي نه یوازي نادیده نیولي دي، بلکي په منظمه توګه یې نقض کوي.

د افغانستان اسلامي امارت په وار- وار د پاکستاني بریدونو غندنه کړې او د نړۍوالو سازمانونو او ګاونډیو هیوادونو څخه یې د دې بریدونو د مخنیوي غوښتنه کړې ده، مګر نړۍواله ټولنه په دې برخه کي لا هم غوښ دریځ نه دی نیولی. د پاکستان په وړاندي د فشار کمښت د دې بریدونو د دوام یو لوی عامل دی.

پر افغان خاوره د پاکستان بریدونه یوازي نظامي یرغلونه نه دي، بلکي د ترهګرۍ د ملاتړ د اوږدې پالیسۍ برخه ګڼل کېږي. پاکستان د هغو ډلو له پاره پناه ځایونه چمتو کوي چي په افغانستان کي د بې‌ثباتۍ سبب کېږي. پر دې سربېره دغه بریدونه د سیمه ییزي ترهګرۍ په پیاوړي کولو او د افغانانو په وړاندي د زبرځواکۍ په ښوولو دلالت کوي.

پر افغان خاوره د بریدونو دوام د سولي او ثبات له پاره د افغانانو هیلي زیانمنوي. دا بریدونه نه یوازي د خلکو ژوند له ګواښ سره مخ کوي، بلکي د دواړو هیوادونو تر منځ، اړیکي هم ترینګلي کوي. پاکستان د دې پر ځای چي د افغانستان د ثبات ملاتړ وکړي، د جګړې اور ته لمن وهي او د سیمي په یووالي کي خنډ جوړوي.

افغانان د خپلواکۍ او سولي غوښتونکي ټولني په توګه، د خپلي مځکنۍ بشپړتیا ساتني ته ژمن دی.

پر افغان خاوره د پاکستان بریدونه باید نړۍواله ټولنه وغندي او د پاکستان په وړاندي د نړۍوالو فشارونو له پاره منظمي هڅې وسي. سربېره پر دې د افغانستان اسلامي امارت باید د خپل سیاسي زعامت، د مجاهد ملت په مرسته او د اسلامي ملي اردو په مټ، د دې بریدونو د مخنیوي له پاره جوابي تګلاري په پام کي ونیسي.

پر افغان خاوره د پاکستاني ځواکونو بریدونه د زغم وړ نه دي. دا بریدونه نه یوازي د افغانانو ژوند ګواښي، بلکي د سیمه ییزي سولي اصول تر پښو لاندي کوي. افغانان باید په دې برخه کي یو موټی سي، خپل ملي حاکمیت وساتي او نړۍوالي ټولني ته په واضح ډول څرګنده کړي چي د دې ډول عملونو مخنیوی، یوازي د افغانستان نه، بلکي د ټولي سیمي له پاره حیاتي دی.

## د بریالي ژوند لس رازونه

محمدنبي "سلطاني"

خوشحاله او ښه ژوند درلودل، د ټولو خلکو هیله ده، هره ورځ تاسو د هغه ښکلي سبا په اړه فکر کوئ چي تاسو په خپلو خوبونو کي رامنځته کړی او د ترلاسه کولو تمه یې لرئ، مګر دا څنګه ترلاسه کولای سئ؟

د ښه او غوره ژوند د جوړولو له پاره ډېري لاري شتون لري، که تاسو وغواړئ چي پر هغو لارو ولاړ سئ، موږ په دې مقاله کي د غوره ژوند جوړولو له پاره ځیني لاري- چاري درته په نښه کړي، هیله ده په لوستلو یې خاوندان سئ؟

۱- د ژوند طرز مو بدل کړئ:

د یوازیوالي ژوند څخه راووځئ، د خپل ژوند د ښه کولو له پاره هڅه او کوښښ وکړئ، ډېري پیسې وګټئ، مهارتونه خپل کړئ، تجربې ترلاسه کړئ او د خپل ژوند د طرز بدلولو او په مختلفو برخو کي د خپلو مهارتونو په زیاتولو سره، هغه ښه ژوند ترلاسه کړئ چي تاسو یې تمه لرئ، ترڅو خپلو نظریاتو ته نژدې سئ او خپل ژوند جوړ کړئ.

۲- د غوره ژوند جوړولو له پاره لیدلوری ولرئ:

یو د سترو انساني وړتیاوو څخه د هغو شیانو د تصور کولو وړتیا ده، چي اوس شتون نه لري. دغه نه شتون تاسو ته اجازه درکوي چي د راتلونکي په اړه فکر وکړئ، ذهن په کار واچوی، راتلونکی مو په کښېي ولټوی او د آینده پر لور چي تاسو یې غواړئ، ګام پورته کړئ، تر څو خپل راتلونکی په کښېي ولټوی.

۳- نوي تجربې ومنئ او و یې کړئ:

د پلان لرلو او د کافي معلوماتو په ترلاسه کولو سره، د مطلوب بدلون پر لور ګامونه واخلئ، نوي تجربې او نوي معلومات پیدا کړئ، د ناکامۍ بېره له زړه وباسئ، ځکه ځیني وختونه تجربې د توپک د ګولۍ په څېر وي، غوره لاسته راوړني رامنځته کوي او مخامخ خپل هدف ته ځان رسوي او کله د اور په څېر هر څه له ځان سره لمبه کوي، خو ستاسي ذهن او فکر یې باید د غوره لاسته راوړنو په تمه وي.

۴- غوره، مشخص او د امکان وړ هدف وټاکئ:

ځیني خلک داسي هدفونه ټاکي، چي تر سره کول یې ناشونی او محال وي، دغه خلک نه سي کولای چي خپل لوړ هدف او انساني کمال ترلاسه کړي، تاسو باید غوره، مشخص او د امکان وړ هدف وټاکی او د ترلاسه کولو له پاره یې هڅه وکړئ، چي خپلو هیلو ته دي ورسوي، هدف دي په لاس درکړي، په ټولنه کي مطرح کس در څخه جوړ کړي او د انساني کمال غوره بېلګه وګرځي.

۵- خپل تېر ژوند تحلیل کړئ:

خپل تېر ژوند ته یو نظر وکړی، ترڅو وکولای سئ د خپلي بریا یا ناکامۍ عوامل په ښه توګه وڅېړئ او د ښه ژوند په لاسته راوړلو کي د بریالیتوب د څرنګوالي په اړه دقیق اټکل ولرئ. د علماوو، پوهانو او د نظر له خاوندانو سره خبري کول به، له تاسو سره مرسته وکړي چي خپل تېر ژوند او راتلونکي ته په خلاص او دقیق لیدلوري سره وګورئ. یادي مشورې به تاسو ته درس درکړي، چي د ښه ژوند پر لور ګامونه واخلئ او د تېر سوي ژوند جبران وکړئ.

۶- له خپل ذهنه جنت جوړ کړئ:

ښه او بد هغه څه دي چي تاسو په خپل ذهن کي جوړ کړي وي. فکر، ذهن، لید او احساسات مو کابو کړئ، هري ماتي ته د ژوند د ورانېدو او خرابېدو په سترګه مه ګورئ او مه هره بریا خپله وروستۍ بریا ګڼئ، هرڅه ته خوشبین اوسئ، غمجني پېښي او تراژیدۍ؛ لکه: د دندي له لاسه ورکول، په امتحان کي کمي نمرې وړل، په اقتصادي چارو کي تش لاس، په ستونزو او مشکلاتو پسي سر مه ګرځوئ، که نه تاسو به تباه او برباد کړي او تاسو به هیڅکله د غوره ژوند په معنی پوه نه سئ.

۷- په ژوند کي ګټور اوسئ:

هڅه وکړئ له مختلفو سرچینو الهام واخلئ، په خپل فکر او ذهن سره نوښت وکړئ، تخلیقي او تحقیقي اوسئ، د نورو تقلید مه کوئ او مه هم ځان له نورو سره پرتله کوئ، بلکي په خپل نوښت او ابتکار سره د ځان له پاه لار پیدا کړئ.

۸- فزیکي او رواني روغتیا ته مو پاملرنه وکړئ:

بدن او ذهن دواړه د غوره ژوند له پاره مهم دي. خپل فزیکي روغتیا او روحاني تغذیې ته پام وکړئ، په اوونۍ کي منظم تمرین وکړئ، مناسب خواړه وخورئ، په پټو سترګو د خوړو هڅه مه کوئ، له مشکوکو خوړو ځان وساتئ او همداسي د نامناسبو اندېوالانو، زهرجنو تبلیغاتو، درواغو، شکمنو ځایونو او داسي نورو څخه ځانونه وساتئ، ترڅو مو جسم، ذهن او روح دواړه آرام او منظم و اوسي.

۹- نوي عادتونه خپل کړئ:

موږ په اوتوماتیک ډول ډېر عادي عادتونه تر سره کوو. هڅه وکړئ د خپل ژوند په اوږدو کي نوي عادتونه خپل کړئ، چي تاسو یې په خپل ژوند کي غواړئ، د دې ډول عادتونو خپلول، ستاسو په ژوند کي خورا اغېزمن دي، کوښښ وکړئ، چي په ۱۵ ورځو کي خپل زاړه عادتونه په نوو عادتونو بدل کړئ.

۱۰- منظم و اوسئ:

د نورو له پاره انتظار مه کوئ، چي ستاسو په ژوند کي نظم تطبیق کړي او یا له تاسي وغواړي چي آرام، خوشحاله، منظم و اوسئ، بلکي تاسو په خپله باید ځان منظم او ځان ته نظم جوړ کړئ. که څه هم دا یو څه سخت دی، خو پوه سئ! چي منظم کېدل، ستاسو په ژوند کي ډېر شیان اسانه کوي.

# د شیطان لښکر

خوبنونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۹۶) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

د اهل الحل والعقد تعریف:
علماوو د اهل الحل والعقد تعریف داسي کړی دی:
موږ دلته د یو څو تعریفونو یادونه کوو:

لومړی تعریف:
الموسوعة الفقهیه، د اهل الحل والعقد تعریف داسي کړی دی:
"د اهل قوت لـه پاره د اهل الحل والعقد لفظ کارول کېږي. لکه: د سیمي علماء، مشران او د ټولني درانه خلک چي د چا په مرسته د حکومت او ولایت مقصود یعني قدرت او تمکین ترلاسه کېږي او دا ماخوذ دي، د کارونو له حل کولو او ترلو څخه مختته فرمایي: کله چي انسان تاریخي پېښي وګوري، نو هغه ته به د اهل شورى او اهل الحل والعقد ترمنځ توپیر څرګند سي او هغه توپیر دادی: د اهل شورى ځانګړی صفت علم او پوهه ده او د اهل الحل والعقد ځانګړی صفت غلبه او قدرت دی.
بیا مثال وړاندي کوي: بشیر بن سعد رضي الله عنه د ابو بکر صدیق رضي الله عنه په بیعت کي و، سره د دې چي د اهل فتوا صحابه کرامو له ډلې نه و، خو د ده قوم خزرج د ده تابع وو، یعني ده ته په خپل قوم کي غلبه او زور حاصل و."

دوهم تعریف:
د رأیي له خاوندانو مراد اصحاب حل و عقد او هغه منل سوي خلک دي چي د علم، امانت دارۍ او تجربې په څېر صفتونه ولري او لـه هغوی مشوره اخیستل، د مسلمانانو په پاچهانو او مسئولو خلکو باندي واجب وي، ترڅو ورپېښو مسایلو او ستونزو کي غور او فکر وکړي او یو مناسب حل لاره ورته پیدا کړي.

دریيم تعریف:
اهل حل و عقد علماء، مشران او د سیمي مخور خلک دي.
فایده: لـه دې تعریفونو څخه دا معلومه سوه چي اهل حل و عقد هر څوک نه سي کېدلای، بلکي هغه خلک کېدلای سي چي په هغوی کي ځیني ځانګړي صفتونه وي او د هغوی لـه امله تمکین او سلطه راځي.
په (الامامة العظمى: ۱۵۱/۱) کي د اهل حل و عقد په اړه پوره تفصیل موجود دی، هلته يې دا هم لیکلي دي:
"د اهل حل و عقد له مسئولیتونو یو دا هم دی چي دوی به د خلیفه انتخاب کوي او بیعت به ورسره کوي. بیا فرمایي: بیعت ته څوک وړاندي کول هم د دوی له ذمه واریو څخه ده."
لـه دې املـه علماء لیکي: لـه دې عبارته معلومه سوه چي داسي یو سړی دي مختته کړي چي امت پر راټول وي، لـه هغه سره دي بیعت وکړي او د هغه اطاعت دي وکړي، یعني په دې کي اهمه خبره د امت راټولول دي، داسي څوک به خلیفه جوړوي چي امت پر راټولېږي.
امام ماوردي رحمه الله په الأحکام السلطانیة کي لیکي:
هغه شرطونه چي باید اهل حل وعقد يې ولري درې دي:
۱– عدالت چي د ټولو شرطونو جامع دی.
۲– داسي پوهه چي په مټ يې دی وپوهېږي چي د امامت له پاره حقدار څوک دی؟
۳– رأيه او حکمت داسي چي په مټ يې داسي څوک منتخب کړي چي تر ټولو زیات باصلاحیته وي، د مفادو ښه پېژندونکی او ښه چلوونکی وی.
د اهل الحل والعقد د شمېر په اړه د علماوو ترمنځ شدید اختلاف دی، د ځینو د شمار له مخي نژدې دوولس اقوال په کښي جوړېږي، خو دلته يې موږ د اختصار په خاطر یوازي راجح قول راوړو:
راجح قول دادی: ځانګړی شمېر ټاکل لازم نه دي، مهمه دا ده: کـه هر څومره وي، خو چي پر امام باندي يې اتفاق راسي، د دوی لـه پاره خاص مقدار نه دی ټاکل سوی، بلکي د جمهور اهل شوکت اتفاق ضروري دی. (الامامة العظمى کي په ۱۶۶ مخ کي) لیکل سوي دي:
"د شمېر متعین کول، د اهل سنت والجماعت موقف نه دی، بلکي د هغوی موقف د اهل شوکت اتفاق دی."
یادونه: ابوبکر بغدادي چي په نړۍ کي يې د خلافت ناره پورته کړه، جمهور اهل شوکت خو پرېږده چي د جهادي ډلو اهل شوکت هم له ده سره بیعت و نه کړ، بلکي څو غلو چي د فهرست په سر کي يې حجي بکر په څېر خلک و، له ده سره بیعت وکړ او دوی هیڅ هم اهل شوکت نه دي بللي.
د خلیفه له پاره شرطونه:
علامه ماوردي رحمه الله د خلیفه له پاره اووه شرطونه ذکر کړي دي:
۱– عدالت:
عدالت هغه کلک شرط دی چي مسلمانان د واجباتو ادا کولو ته، له حرامو او مکروهاتو څخه د ځان ساتلو ته هڅوي او له مناسب کارونو يې ساتي.

نور بیا...

## د ینې د سیروز (تور ژړي) په ناروغانو کي د هیپاټیک اینسیفالوپتي تشدیدوونکی عوامل

رنځورمل ډاکټر علي احمد "فضلي"

دوهمه او وروستۍ برخه

د څېړني تر بشپړېدو وروسته چي د یو کال (۱۳۹۷–۱۳۹۸) په موده کي لـه کاري پلان سره سم، د کندهار په میرویس روغتون کي د هیپاټیک اینسیفالوپتي ۵۰ ناروغانو باندي په Prospective شکل تر سره سوه، د تحلیل په ترڅ کي يې څرګنده سوه چي د ۵۰ ناروغانو (۳۲نارینه او۱۸ښځینه) له ډلي ۲۴ (۴۸٪) ناروغان يې HbsAg مثبت، ۱۴(۲۸٪) يې HCV مثبت وو او ۹ (۱۸٪) يې B&C دواړه مثبت ول، په داسي حال کي چي ۳ (۶٪) ناروغان يې B&C دواړه منفي ول (لومړۍ ګڼه دیاګرام) همدارنګه انتان، د معدې خونرېزي، قبضیت او د یوریتکونو استعمال په کندهار ښار او سیمو کي د ینې د سیروز په ناروغانو کي د HE لـه پاره ډېر عام فاکتورونه دي.
هغه څېړني چي د نړۍ په مختلفو هیوادونو کي د ینې د سیروز پر ناروغانو د هیپاټیک اینسیفالوپتي د تشدیدوونکو عواملو د معلومولو په موخه تر سره سوي، مختلفي پایلي درلودلي چي د دې ډلي څخه د نمونې په توګه هغه څېړني چي زموږ په سیمه یېز هیواد (پاکستان) کي د Pak Med Res cent. له خوا په ۲۰۰۵م کال کي د پېښور په Lady Reading Hospital کي تر سره سوي او هغه څېړنه چي د امریکا د ینې د ناروغیو د انجمن لـه خوا په ۲۰۰۷م کال کي تر سره سوې.
په نورو هیوادونو کي د تر سره سوو څېړنو سره زموږ د څېړني د پایلو د مقایسه کولو څخه دا څرګنده سوه چي په افغانستان او پاکستان کي د ینې د سیروز په ناروغانو کي د HE په تشدیدوونکي فاکتورونو کي معدې معایي خونریزي، قبضیت، انتانات د الیکترولایتونو عدم توازن او د مسکناتو اخیستل، ډېر بارز عوامل دي، د دی برعکس په غرب (U S A) کي الکولیزم او تازه د شنټ لـه پاره د جراحي عملیات تر سره کول، ډېر عام تشدیدوونکي فاکتورونه دي، د پېښو په دې توپیر کي او خراب اقتصادي او اجتماعي حالت درلودل، اغېزه لري.
دا چي زموږ د ټولنی زیات شمېر کسان پـه ځانګړې توګه، هغه کسان چي په مزمنو ناروغیو اخته وي، د درملو په ځانګړې توګه؛ د قبضیت ضد درملو (Lactulose وفایبرلرونکي خوړو) د رانیولو توان نه لري او د دې ترڅنګ، د ناروغۍ په هکله د ناروغانو د پوهاوي کموالی، د بېلابېلو انتاناتو رامنځته کېدو ته زمینه برابروي.
عمومي پایلي:
همدارنګه د ینې د سیروز هغه ناروغان چي حبن ولري، یوریتیک باید په ډېر احتیاط سره ورته ورکول سي او د انتان د مخنیوي لـه پاره باید ډېر جدي لاري–چاري په پام کي ونیول سي او د قبضیت د مخنیوي په منظور، ناروغان باید د لکتولوز او فایبر لرونکو خوړو اخیستلو ته وهڅول سي، پر دې سربېره د معدې معایي خونریزیو د مخنیوي له پاره ناروغانو ته باید پر وخت انډوسکوپي معاینه تر سره سي او د ینې د سیروز د مخنیوي له پاره لازم وقایوي تدابیر تر سره سي.
وړاندیزونه:
د دې څېړني په پای کي خپلو هم مسلکانو، عامو هیوادوالو او مسئولینو تـه لاندي وړاندیزونه وړاندي کوو:
۱– د وېروسي انتاناتو د انتقال د مخنیوي لـه پاره تعقیم سوی Syringes باید استعمال سي، ټول د جراحي او د غاښونو جوړولو او کښلو سامانونه باید په پوره ډول سره تعقیم سي.
۲– د مخدره موادو د استعمال او د الکولو څښلو پر ضد، باید پراخ طبي وضاحتونه ټولني ته وړاندي سي، د تولید او تجارت په برخه کي باید مسئولین جدي پاملرنه وکړي.
۳– د نقل الدم (د وینې د انتقال) په وخت کي باید د وېروسونو د شتون د رد لـه پاره سیرولوژیک معاینات ترسره سي.
۴– د ینې د سیروز په ناروغانو کي د هیپاټیک اینسیفالوپتي تشدیدوونکي عوامل باید پر وخت سره تشخیص او تداوي کړل سي.
۵– د ینې د مزمني ناروغۍ او د اختلاطاتو مخنیوي په اړوند، باید ټولني ته روغتیایي ښووني وړاندي کړل سي.
۶– د عامي روغتیا مسئولینو له لوري، چي په کندهار ښار کي دي، د هیپټاتیس B د مخنیوي له پاره د واکسین یو مرکز که فعال کړل سي، ډېر به ښه وي، ترڅو د ټولني خلکو ته واکسین د ترلاسه کولو له پاره په کښي اسانتیاوي برابري سي.

اخځلیکونه (References):

.MAXINE A. PAPADAKIS 1 STEPHEN J. McPHEE. ASSOCIATED EDITOR MICHAEL W. RABOW (2018). Current Medical Diagnosis and Treatment 57th Edition Chapter, 16 pp. 711-718, Hill-Education Mc.Graw-LANGE.
2. Khokar N. Spectrum of chronic liver disease in a tertiasrycare hospital J Pak Med Assoc 2002; 52: 56.
3. Hamid S, Tabassum S, Jafri W. Hepatitis C has replacedhepatitis B as majorv cause of chronic liver disease in Pakistan. 30: Hepatology 1999; 212A.
4- Alam I, Razaullah, Haider I, Humayun M, Taqweem MA, Nisar M.Spectrum of precipitating factors of hepatic encephalopathy in liver cirrhosis. Pak J Med 2005;44:96-100 Res.

پای

## شعر او آدب

## د طلوع زریني وړانګي

### غوړسه لاروی یه!

قاري عبدالستار "سعید"

غوړسه لاروی یه نن يې سپینه در ته وایمه!
زړه مي را ډک سوی له زړه سوي نه در ته وایمه!

نن در ته له سره د شوتلو بګړۍ نه ترم
ږدمه اینه در ته په سترګو پټۍ نه ترم
غاړه خلاصومه په خپل لاس مي مرۍ نه ترم
آه مي یاغي سوی له زړګینه در ته وایمه!
غوړسه لاروی یه

څوک يې له هر څه مخکي خپل ځان ته سترګي ټیټي کړه
څو شېبې دي خپل څیري ګرېوان ته سترګي ټټي کړه
ځان په کښي پیدا کړه سپین قرآن ته سترګي ټیټي کړه
ولي يې هست سوی له نېستي نه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

ګوره مسلمان يې مجاهد د حق سنګر يې ته
خپله دي اقرار دی چي وارث د پیغمبر يې ته
ناست په سجادا د ستر صدیق او لوی عمر يې ته
آه دعوه دي څومره ده سنګینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

دا د شعار لار نه ده اخلاص او قرباني غواړي
نوم نمایش نسته په کښي هر څه عملي غواړي
عشق د ستر بلال غواړي او فقر ګوذري غواړي
ګام په ګام به زبېښي د زړه وینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

ګوره دا مصنت ده د نیایي عشرت آله نه کړې
ګوره دا منصب د فرعوني مقام ځینه نه کړې
ګوره دا وسله دي د مظلوم په وینو سره نه کړې
ای عبدي الرحم الرحمینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

ګوره دا وسله تر مسکیر ډېره نشه لري
واک منصب تیار د لپونتوب غوندي کیسه لري
نفس چي بېلو ګام وي بیا نو بېله تماشه لري
ډېر ځوانان يې وایسته له دینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

دا ولس یتیم دی پر سر لاس ته ضرورت لري
تږی دی د وړ چلند ګیلاس ته ضرورت لري
درد يې درد کېدل غواړي احساس ته ضرورت لري
ګوره ترې دریغه نه کړې مینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

اې د خدای ج د لاري مجاهده مسافر آشنا!
لاره د کبیر جهاد کي هېر نه کړې اکبر آشنا!
جنګ په ښو اعمالو دی میراث د پیغمبر آشنا!
پام تکیه و نه کړې په ماشینه در وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

دا د عمر جنګ دی څه د کال او د پېړۍ نه دی
کار د یوې منډې جذباتي او بېړنۍ نه دی
فرض دی عبادت دی نمایش د بدماشۍ نه دی
وا نه وړې له لار د بندګي نه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

پټي سترګي مه ځه ځان سمبال په اند او توره کړه
شپه ده سترګي ډکي د قرآن له رانه نوره کړه
فکر عمل دواړه منور له دې منشوره کړه
بیا نو کړه جهاد ته اسپه ځینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

ګوره بې پروا د قوانینو د پاک دین نه سې
چیرته د کعبې پر ځای رهي د هند او چین نه سې
داغ د بدنامۍ د پاک اسلام په سپین جبین نه سې
بس همدا "سعید" له زړګي خوږینه در ته وایمه!
غوړ سه لاروی یه!

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګډون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کي ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریز کال په آخرکي د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼي یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کي ګډون وکړئ.

د ګډون کلنی بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانی، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندې کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مسئول مدیر: ـــــــ بریالی "فیضي"
د تصحیح مسئول: ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمپوز او ډیزاین: ـــــــ نصیر احمد "صابر"
د مدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پته: ـــــــ علامه حبیبي واټ –اطلاعات او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته: ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 — ISSue: 59 — Established in 1300 Hijri

# اعلانونه او خبرتیاوي

**(۱) مخ پاته: درانه انتقامي بریدونه؛ ترهګرو...**

د اسلامي امارت دا انتقامانه برید په پکتیکا کې د بې ګناه ولسي خلکو د شهیدانېدو تر څنګ، بل لوی پیغام دا و، چې افغانستان له هیڅ لوري خپلي امنیتي خپلواکۍ او خاوري ته تهدید نه مني.

پاکستاني ریاست د دې پر ځای چې د سیمې د ملتونو او سیمه ییز و هیوادونو ترمنځ، د سولي او همکارۍ فضا رامنځته کړي، برعکس؛ د داعشي ترهګرو ملاتړ کوي. هغوی روزي او پټنځایونه ورته جوړوي. د پاکستاني ریاست له خوا دا ناوړه چلند باید د نړۍوالي ټولني له پاره یوه جدي اندېښنه وي. د پاکستان دغه کړني د نړۍوالي سولي له پاره هم ستر تهدید کېدای سي.

سیمه ییزو هیوادونو ته هم په کار ده چې د داعشي خوارجو پر ضد، یو ګډ دریځ خپل کړي، څو د سولي او ثبات له پاره یوه ګډه سالمه فضا رامنځته سي. د دې تر څنګ باید نړۍواله ټولنه د هغو هیوادونو ملاتړ بند کړي، چې داعش ترهګرو ډلو ته پناه او روزنه ورکوي، ځکه دا کړني له سیمې هاخوا، نړۍ هم له ستر ګواښ سره مخ کولای سي.

نړۍ باید پر پاکستاني ریاست فشار راوړي، څو د داعش په څېر له شریرو کړیو لار جلا کړي.

د دې ټولو حقایقو په رڼا کې د اسلامي امارت وروستي عملیات د افغانستان د امنیت او خپلواکۍ ساتني له پاره مهم اقدام و، چې د خوست او پکتیکا ولسونو له لوري د یو لاریون په ترڅ کې وستایل سو.

دې چاري څرګنده کړه، چې اسلامي امارت د خپلي خاوري، ولس ساتني او دفاع کلک هوډ او وړتیا لري او د پاکستاني ریاست دا ناکام سیاستونه چې په سیمه کې د ناامنۍ د خپرېدو سبب ګرځي، باید د سیمه ییزو او نړۍوالو ټولنو له لوري په جدي توګه وڅېړل سي. اداره

**(۱) مخ پاته: اقتصادي مرستیال: د شاه...**

په یو شمېر هیوادونو کې یې ارزښت تر نفتو او قیمتي کاني زېرمو هم لوړ دی."

د اقتصادي مرستیال د څرګندونو له مخي، د شاه او عروس بند د چارو په بشپړېدو سره به ډېرو بزګرانو ته د مځکو خړوبولو په موخه، اوبه برابري سي او د برېښنا پر تولید سربېره به، د فردي اقتصاد او په ټوله کې د هیواد له ملي اقتصاد سره د پام وړ مرسته وکړي.

د ریاست الوزرا اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي د اوبو بندونو جوړول، د هیواد د اوبو کنټرول او مدیریت؛ د افغانستان یوه مهمه اړتیا وبلله او ویې ویل، اسلامي امارت په دې لاره کې چټک ګامونه پورته کړي چې په وینا یې، د شاه او عروس بند پروژې ګټه اخیستنه یې یوه بېلګه ده او په دې سره به د اوبو د کمښت له پلوه د کابل خلکو ستونزي تر ډېره حده حل سي.

د ریاست الوزرا سیاسي مرستیال مولوي عبدالکبیر ویلي، د افغانستان اسلامي امارت نن یووار بیا ثابته کړه چې د هیواد آبادولو او ځان بسیاینې په لاره کې هیڅ ډول خنډونه نه مني او په دې لاره کې خپلو هڅو ته دوام ورکوي، تر څو هیوادوالو ته لازمي اسانتیاوي برابري سي.

د هغه په قول: "په تېرو شلو کلونو کې د افغانستان د اوبو د مهارولو او برېښنا د تولید په برخه کې هیڅ ډول اساسي کار نه دی سوی، بلکي له ګاونډیو هېوادونو پر وارداتي برېښنا تمرکز سوی و، خو اسلامي امارت دا خپل مسئولیت ګڼي، چې د هیواد د اقتصادي ودې له پاره له کورنیو منابعو استفاده وکړي او افغانستان ځان بسیاینې ته ورسوي."

د سیاسي مرستیال په خبره: په یاده موده کې د هیواد په صنعتي پارکونو کې فابریکې او کارخونې د برېښنا له جدي کمښت سره مخ وې، خو اوس مهال اسلامي امارت د افغانستان د ملي اقتصاد د پیاوړتیا هوډ کړی او په دې برخه کې لازم اقدامات تر سره سوي دي.

د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست ملا عبداللطیف منصور هم د یادي پروژې پر اقتصادي او ټولنیز ارزښت او همدارنګه د اوبو او انرژۍ په برخه کې د دې وزارت د پلانونو په اړه خبري وکړې او ویې ویل: د افغانستان اسلامي امارت ته له تېري اداري ډېري نیمګړي پروژې پاته وې، خو د اسلامي امارت په بیا واکمنۍ سره یو شمېر نیمګړي پروژې ګټې اخیستنې ته سپارل سوي او د هغو تر څنګ، د هیواد په کچه د بېلابېلو نوو پروژو چاري هم د تطبیق په حال کې دي او له هیوادوالو یې وغوښتل چې د افغانستان او اسلامي نظام د دښمنانو د منفي تبلیغاتو ښکار نه سي او په هیواد کې د ملي پروژو د تطبیق او ساتني په برخه کې دې له اسلامي امارت او په تېره بیا له اوبو او انرژۍ وزارت سره همکاري وکړي.

د کابل والي ملا امین الله عبید ویلي، تر کلونو وروسته د کابل ښاریانو هیلي پوره کېږي او نن د هیواد یوهستره پروژه د شاه او عروس بند ګټې اخیستني ته سپارل کېږي چې دا د اسلامي امارت یوه لویه لاسته راوړنه ده.

د اسلامي امارت د چارواکو د څرګندونو له مخي، په افغانستان کې د اوبو د مدیریت او د اوبو بندونو د جوړولو اصلي موخه، د افغانانو د حقه حقونو تأمینول دي، نه سیمه ییزو هیوادونو ته د ستونزو جوړول.

د «تابیله، پرهون طرح» ایراني ساختماني شرکت رئیس سیف الله نجفي، د پروژې په اړه تخنیکي معلومات شریک کړل او هیله یې وښووله چې د شاه او عروس بند پروژې ګټه اخیستنه وکولای سي، د ایران او افغانستان ترمنځ، د تاریخي، فرهنګي، اقتصادي او ټولنیزو اړیکو د لا پیاوړتیا او پراختیا سبب سي.

د شاه او عروس بند د پلازمېني کابل په شکر درې ولسوالۍ کې موقعیت لري چې تر مځکي لاندي اوبو د تغذیې، د موسمي سېلابونو د کنټرول او تر ۲۷۰۰ هکتاره کرهنیزي مځکې د خړوبولو تر څنګ؛ ۱,۲ مېګاواټه برېښنا به هم تولید کړي.

دغه بند د ۷۸ متره لوړوالي په لرلو سره، په کال کې د ۳۰ میلیون متره مکعبه اوبو د تنظیم او همدارنګه د شاوخوا پنځه میلیونه متره مکعبه څښاک اوبو د برابرولو وړتیا هم لري.

**(۱) مخ پاته: د ویاندویانو د ظرفیت...**

ادارو د ویاندویانو ظرفیت لوړ سي.

د یادوني وړ ده، چې څه موده مخکي هم په دې ریاست کې د ویاندویۍ په برخه کې د امارتي ادارو د ویاندویانو د ظرفیت لوړوني دوه ورځنی سېمینار جوړ سوی و.

**(۱) مخ پاته: د ښار په بېلابېلو ناحیو...**

د بل خبر له مخي په کندهار کې د یو کیلو متر په اوږدوالي سړک قیریزي کېږي.

د ښاروالۍ ویاند سیف الله عاصم باختر خبري آژانس ته ویلي، د کندهار ښار د پنځمي ناحیې اړوند، په احمد شاهي مینه کې، د یو کېلو متر په اوږدوالي سړک قیریزي کېږي.

یاد سړک چې یو کېلو متره اوږدوالی او د چریو په شمول، ۱۰ متره بروالی لري، چاري یې د یو لړ مراسمو په ترڅ کې پیل سوي، چې پرمهال یې د ښاروالۍ تخنیکي او سکتوري رئیس مولوي نورالباقي خادم، د ښاروالۍ تخنیکي ټیم، د سیمې مشرانو او ځوانانو ګډون کړی و.

**(۱) مخ پاته: د اوبو رسوني لویي...**

ښاروال مولوي لطف الله لطیفي ویلي، د دې شبکې په لومړي فاز کې د کانال او سلبونو جوړول او د برمو وهل او په دوهم فاز کې د دوو لویو ذخیرو جوړول شامل وو، چې ټولي چاري یې مخکي تر سره سوي دي.

اوس تازه د دې ستري شبکې د درېیم فاز کارونه پیل سوي، چې په دې فاز کي کور په کور اوبه رسول شامل دي، چې د پایپ کښولو او ښخولو کار یې د یکشنبې په ورځ پیل سو.

**(۱) مخ پاته: په خاکرېز ولسوالۍ کې...**

په همږغۍ، د ملګرو ملتونو پراختیایي پروګرام (یو. این. ډي. پي) سازمان په مالي ملاتړ، د خاکرېز ولسوالۍ د باغکي په سیمه کې د ۱۵ میلیونو ۹۸۹ زره افغانیو په لګښت، د یو چیک ډیم د جوړېدو چاري پیل سوي دي.

د حقمل په قول، یاد چیک ډیم ۸۰ متره اوږدوالی او ۱۲ متره لوړوالی لري.

د یادوني وړ ده، چې څه موده مخکي هم د خاکرېز ولسوالۍ په اټلي سیمه کې د ۳,۶ میلیونو افغانیو په ارزښت د یو چیک ډیم د جوړېدو چاري پیل سوي وې.

**(۱) مخ پاته: په کندهار کې له سوو...**

اصلاح سوي تخم، ۵۰ کېلو سپینه سره او ۵۰ کېلو توره سره ورکړل سوه.

د یادوني وړ ده، چې څه موده وړاندي هم په یاده ولسوالۍ کې له ۷۰۰ تنو بزګرانو سره ورته مرسته سوې وه.

## ټولنیزي رسنۍ

**سید عبدالغني "اقرار":**
برکت لرونکی مال هغه دی چې په نېکیو کې مصرف سي او د انسان څخه دیندار شخصیت جوړ کړي او بې برکته مال هغه دی چې په بېهوده، بې فایدې، امورو، په عبثیاتو او ضررونو کې ولګېږي.

**احمد ظاهر "رشال":**
دا عذاب نه دی چې یو څوک ژوندی په مځکه ننوځي، بلکي د الله جل جلاله له لوري تر ټولو لوی عذاب، د یو بنده له پاره دادی چې د هغه څخه د دینداری توفیق واخلي.

**Naqib Ahmad Noori:**
لویه بدبختي داده چې اکثره نوکي ځوانان مو لمونځونه نه کوي، مخامخ یې قصداً قضا کوي، یو لامل یې د والدینو بېغوري او بې توجهي ده.
ستاسو قربان سم چې کلمه یې وویل، دستي به لمونځ کوي.
لمونځ د دین ستن ده.
لمونځ برکت دئ.
لمونځ د فحشاوو او منکراتو څوک را ګرځوي.
لمونځ مو په کارونو کې بریالی کوي.
چې نور لاملونه به یې څه وي؟

**محمد خالد "خالد":**
زما په آند په اوس وخت کې به دا هم لوی کار وي چې یو ځوان د خپل پلار په ګټلي نېک نوم خلک شکمن نه کړي.

**Jasheem Abdulrahaman:**
ډېره توقع او تمه (طمع) ستاسې د خپګان سبب کېدلای سي.

**عبدالواسع "سمسور":**
په خبرو کې هیڅکله له چا سره مه په سر کېږئ، که څوک قناعت کوي، کور یې ودان او که یې نه کوي، اعصاب مه خرابوه، ځکه ته نه سې کولای چې مچ قانع کړې چې ګلان تر کثافاتو ښه او ښکلي دي.

**Abrar Agha:**
کله چې مایوسه سوې، تر ځان لاندي خلکو ته وګورې چې هغوی په کوم حال کې دي.

**Aminrahman Yaad:**
هغه کسان هیڅکله مه هېروئ چې له تاسو سره یې هغه مهال مرسته کړې وه چې نور خلک د بهانو په جوړولو بوخت وو.

**حامد افغان:**
رسول الله صلی الله علیه وسلم یو صحابي ته فرمایي: خلکو ته شر مه رسوه، دا دې پر خپل ځان خیرات او صدقه ده.

**Nimatullah Shakir:**
نن درې توصیې درته کوم:
۱– که غواړې چې د یو چا ظرفیت معلوم کړې، نو د څه وخت له پاره ور ډېر سه!
۲– که غواړې چې د نورو په زړونو کې خپل ارزښت معلوم کړې، نو د څه وخت له پاره ورڅخه ګوښه سه!
۳– که غواړې ضابط او مضبوط ملګري ولرې، نو له هر چا سره ملګرتیا مه پیلوه!